بختور دی هغه قوم چې
خدای یې څښتن دی. او هغه خلک
چې هغه د خپل میراث لپاره
غوره کړي دي. زبور 33:12



دلته څلور حقیقتونه شتون لري چې موږ باید په بشپړ ډول پوه شو:

# 1 خدای تاسو سره مینه لري.

خُدایٔ پاک د دې دُنیا سره داسې مینه وکړله چې خپل اېک یو زویٔ
یې هم ورکړو، نو څوک هم چې په هغهٔ ایمان راوړی هلاک به نهٔ شی
خو د تل ژوندون به بیا مومی. یوحنا 3:16

غل صرف د غلا د قتل او د تباهۍ دپاره راځی خو زهٔ دې له راغلے یم چې خلق
ژوندون حاصل کړی او په مکمل ډول پُرسکونه وی. یوحنا 10:10

## 2 انسان په فطرت کې ګناهګار دی. نو هغه د خدای څخه جلا کیږي.

ځکه چې ټولو ګناه کړې ده او د خُدایٔ پاک د لویئ نه محروم دی.
رومیان 3:23

ځکه چې د ګناه بدل مرګ دے خو د خُدایٔ پاک بخښنه زمونږ په
مالِک عیسیٰ مسیح کښې د تل ژوندون دے. رومیان 6:23

او لکه چې څنګه د بنی آدم دپاره یو ځل مړ کېدل مقرر دی، او د
هغې نه پس به عدالت ته وړاندې کیږی، عبرانیان 9:27

خو د ویرېدونکو، بې‌ایمانانو، پلیتانو، قاتلانو، حرامکارانو، جادوګرانو،
بُت پرستانو او هر قسم دروغژن خلق به په هغه دریاب کښې وی چې
په کښې د ګوګړو اور بلیږی، او دا دوېم مرګ دے. رویا 21:8

## 3 عیسی مسیح جنت ته یوازینۍ لاره ده.

عیسیٰ هغهٔ ته وفرمائیل، زهٔ لار یم، زهٔ حق یم او زهٔ ژوندون یم. هیڅوک هم زما د وسیلې نه بغیر پلار له نهٔ شی راتلے. یوحنا 14:6

ځکه چې مسیح ستاسو د ګناهونو دپاره یو ځل د همېشه دپاره مړ شو، یعنې صادق د ګناهګارانو دپاره، د دې دپاره چې تاسو خُدائ پاک له راولی. هغه په جسمانی توګه مړ کړے شو خو په روحانی توګه ژوندے کړے شو. اول پطروس 3:18

څوک چې په زوئ ایمان ساتی هغه به د تل ژوندون مالِک وی، خو څوک چې د زوئ نافرمانی وکړی هغه به دا ژوندون ونهٔ ګوری او تل به د خُدائ پاک د غضب د لاندې وی. یوحنا 3:36

## 4 موږ باید زموږ د نجات لپاره په مالک عیسی مسیح باور وکړو.

ځکه چې خُدائ پاک د خپل فضل په سبب تاسو له د ایمان په وجه خلاصون درکړو، او دا ستاسو خپل کار نهٔ وو، بلکې دا د خُدائ پاک د خوا نه انعام دے. خلاصون زمونږ د نېک عمل اجر نهٔ دے نو په مونږ کښې دې څوک هم په خپل عمل فخر ونهٔ کړی. اِفِسیانو 2:8

په ایمان سره خدای ته دا دعا ووایه:
مالک عیسی ، زما لپاره ستاسو د لویې مینې لپاره ډیره مننه. زه اعتراف کوم چې زه ګناهکار یم او زه بخښنه غواړم. مننه چې زما د ګناهونو د جزا ورکولو لپاره په صلیب باندې مړ شو. زه ستاسو له مړو څخه په ژوندي کیدو باور لرم. له اوس څخه، زه تاسو د خپل رب او نجات ورکوونکي په توګه باور لرم. زه ستا د ابدي ژوند ډالۍ منم او خپل ژوند تاته سپارم. ما سره مرسته وکړه چې ستا د حکمونو اطاعت وکړم او ستا په نظر کې خوښ شم. امین

ځکه چې دا زما د پلار مرضی ده چې هر څوک چې زوئ ووینی او په هغۀ ایمان راوړی، هغه به د ابدی ژوندون خاوند شی، او زۀ به هغوئ د قیامت په ورځ بیا راپاخوم. یوحنا 6:40
هغۀ مونږ د تیارې د بادشاهۍ د اختیار نه آزاد کړُو او د خپل محبوب زوئ په بادشاهۍ کښې یې داخل کړُو، چا کښې چې مونږ ته خلاصون، یعنې د ګناهونو نه معافی حاصله ده. کولوسیان 1:13
نو بیا کۀ څوک په مسیح کښې وی نو هغه نوے مخلوق دے. زاړۀ هر څۀ ختم شول، وګورئ هر څۀ نوی شول. دوېم کورنتیان 5:17
خو کومو خلقو چې هغه قبول کړو او په هغۀ یې ایمان راوړو نو هغۀ هغوئ ته دا حق ورکړو چې د خُدائ پاک اولاد شی، یوحنا 1:12
ښه عمل کول د نجات وسیله نه ده، مګر زموږ د نجات ثبوت دی.